# غزل د جوړښت له مخې

د غزل لغوي معناوې

غزل د پخوانیو شاعرانو او لیکوالو په اثارو کې په څلورو معناوو راغلې ده:

۱- غزل د څو بیتونو مقطعات چې په اواز سره ویل کېده. غزل د اواز په نامه په موسیقي کارانو کې نومول شوې وه. په دې ځای کې غزل د اواز په معنی هم راغلې ده غزل ګو او غزلخوان د اواز خوان یا سندرغاړي په معنی راغلی دی.

۲- غزل د قصیدې د تغزل په معنی ، دا معنی تر نهمې او لسمې پېړۍ پورې معمول وه.

۳- غزل د مطلق عاشقانه شعر په معنی او حتی د غنایي شعر معادل یې ګڼي.

٤- غزل له شعري جولو څخه هغه یو ده چې په شپږمه پېړۍ کې دود شوه او په اوومه پېړۍ کې خپل اوج ته ورسېده. (۹م ۲۰۸)

- د غزل بله معنی له ښځو سره خبرې کول، هغه خبرې چې د ښځو په ستاینه کې شوې وي یا له هغو سره د عشق په باره کې شوې وي. ( ۵م ۷۰۱ ) .

البته دلته له ښځو سره خبرې یا د ښځو په اړه له خبرو څخه مطلب په ډېره نرمه ، لطیفه ، باریکه او سنجیده لهجه غږېدل دي.

- پورتنۍ خبرې په خپل ځای سمې دي خو کله چې پروفیسور سید تقویم الحق کاکاخېل د حمزه بابا پر غزل خپل مضمون لیکنه د غزل په لغوي معنی پسې یې عربي ادب او تاریخ ته مخه کړه ، هلته یې یو جمله پیدا کړه ( غزل الکلب ) یعنې سپی غزل شو.

ددې جملې کارونه هغه وخت کېده چې عربو ښکاریانو به خپل سپي په هوسۍ پسې خوشې کړه کله به داسې پېښېده چې هوسۍ به ستړې شوه او په یو ځانګړي انداز به یې د سپیو پر لور وکتل ، د هوسۍ له ستر ګو به د سپیو پر ستر ګو داسې یو کیفیت خور شوچې سپي به ځای پر ځای ودرېدل یا به کنښناستل او هوسۍ ته به یې هېڅ نه ویل داسې پېښنه چې به کله رامنځته شوه نو عربانو به ویل ( غزلالکلب ) یعنې سپی غزل شو(۲ م ٤۷ )

له پورته څرګندونو څخه دا جوتېږي چې غزل د یو کیفیت نوم دی او کله چې هم په چا وشي نو د فکر په تال یې د څو شېبو لپاره زانګوي.

د غزل اصطلاحي معنی:

د ظاهري جوړښت له مخې د غزل اصطلاحي تعریف داسې دی: هغه بیتونه چې د وزن له مخې یې ټولې مسرې هم وزنه وي لومړی بیت ته یې مطلع وایي چې مصراع بیت وي او نور بیتونه یې کله مصرع او اکثره نا مصرع وي که په وروستي بیت کې یې شاعر خپل نوم یا تخلص راوړی وي مقطع ورته وایي، چې د بیتونو شمېر یې د اکثرو څېړونکو په نظر له پنځو تر څوارلسو دی.

د غزل هر بیت یوه بېله مفکره وي چې د ټولو بیتونو تر منځ یې د تاثر وحدت هم شرط دی.

د غزل پیدا ایښت

عربي ادب کې د غزل لپاره ځانګړې جوله (فورم) نه و ، د هغوی شاعرانو عاشقانه مضامین په قطعو او قصیدو کې بیانول لکه:( عمر بن ابي ربیعه ، کُثیر عزه او جمیل بُثَینه ) ته یې غزل بول شاعران ویل.

که د غزل د پیدا ایښت تاریخچه له فارسۍ څخه پیل کړو ګورو چې د شپږمې پېړۍ تر پیله د تغزل یعنې قصیدې دور دی نه د غزل د سنایي(۵۳۵م) تر دوره د غزل جوله ډېره کمه ده. په ځینو دیوانونو کې لکه د ناصر خسرو ، ارزقي هروي او لامعي ګرګاني کې اصلا غزل نشته او په ځینو دېوانونو کې لکه درودکي ، عنصري ، منو چهري او ابو الفرج روني تر دوه درې غزلو ډېرې نشته .
په نورو شاعرانو کې هم د قصیدې په پرتله غزل لږ ده او دا هم لرې نه ده چې هغه دې هم د قصیدو د تغزل برخه وي چې د هغوی د مدح برخه له منځه تللې یا هېڅ ویل شوې نه ده. د شپږمې پېړۍ شاعران معمولا دوه جنبیي دي هم غزلې او هم قصیدې لري. بیا هم د قصیده ویونکو شاعرانو په جمله کې شمېرل کېږي لکه معزي چې د (٤٦١ ) قصیدو په وړاندې یوازې (۵۹ ) غزلې لري.

د فارسي ژبې پخوانی غزل پوره تغزل ته ورته دی. چې اسلوب یې هماغه د خراساني شعر غوندې دی. ژبه یې ساده او له بدیع او بیان څخه یې چندان ګټه نه ده اخیستې. موضوع یې مادي ځیزونه دي له عرفان ، لوړو معناوو یا معشوق په اړه په هغه کې کومه خبره نشته .
د هغه دور تغزل هم دداسې معشوق په اړه و چې کوم لوړ مقام یې نه درلود ، لکه د وینځې او غلام ستاینه.

د غزل په پیدا ایښت کې بیلابېلې عقیدې ښودل شوي دي چې تر ټولو معقوله یې دا ده، چې غزل هماغه تغزل دی چې د شپږمې پېړۍ په لومړیو کې د مدحې د بازار د سړېدو په وجه له قصیدې بیل شو. د قصیدې په لړ کې یې د تغزل په وروستي بیت کې د ممدوح نوم یا تخلص راووړ ولې په غزل کې شاعر خپل نوم یا تخلص راوړل دود کړ.

لومړنی غزل په فارسي ادب کې په اصطلاحي بڼه د شهید بلخي (۳۲۵ ) هـ او رودکي (۳۲۹ ) هـ په اثارو کې تر سترګو شوه . د شهید غزل مطلع:

مرا به جان تو سوګند و صعب سوګندی
که هر ګز از تو نه ګردم نــه بشنوم پندی
(۹ م م ۲۱۰-۲۰۸ )

د پښتو ادبي تاریخ پاڼې چې د غزل د پیدا ایښت په اړه موږ اړوو لومړی محمد هاشم سروانی (۲۹۷ خوا او شا وفات) تر سترګو کېږي چې د خپل استاد ابن خلاد کلام یې له عربي څخه پښتو ته ژباړلی دی:

ژپه هم ښه وینا کاندي چې یې وینه
د خاوند په لاس کې زر او درهمونه
(۳م م ۵۹ او ۶۰)

په پورته ژباړه کې د عربي ادب اثر په پښتو ژپه جوتېږي د پورته ژباړې جوله غزل ده . دا چې فکر یې د بلې ژپې دی نو کره کتونکو پرې د غزل په برخه کې څه خاص نظر نه دی خرګند کوی.

د پښتو ژبې ادب د څېړنې له مخې لومړنی غزل چې خیال یې پخپله د شاعر دی او جوله یې هم د غزل خپله کړې د اکبر زمینداوري دی چې د (۷۷۱) هجري خوا او شا یې ژوند کاوه.

افضل رضا (۱۹۷۸ع) لیکي: (( له تحقیق څخه معلومېږي چې پښتو غزل له فارسی نه راغلی دی او له ځان سره یې هغه واړه تکلفات هم راوړي دي چې په فارسی قدیم غزل کې بیا موندی شي خو له دې نه هم انکار نشي کېدای چې هر کله اسلام خور شو له اسلام سره سره د عربي ژبې او عربي ادب هم مفتوحه علاقو ته را ورسېد.)) (۸ م ۱۸)

د څېړونکو د نظر یو په یووالي د پښتو فني او عروضي غزل چې تر دې دمه زموږ لاس ته راغلی د اکبر زمینداوري څو غزلې دي.

د زمینداوري یو غزل:

د خپل ځان له حیرانۍ څه ویل کړم
د عشق ویر به تل پخپله پېټول کړم
ما مدام لکه بورا په ګلو ګشت کړ
اوس به څم په سر تور سر فراق د ګل کړم
د غماز لړمون به زه پر لمبه کښېږدم
ځینې هېر به د یار بزم ګل و مل کړم
زما د یار د مینې اور په زړه کې بل دی
زه به سر او مال ښندم دید به حاصل کړم
د بیلتون له ویره ژاړم اوښکې وینې
زه اکبر په خپل اشنا د سر ښندل کړم
(۸ م ۴۳)

مخکې تر نیمه عروضي او عروضي شاعری په پښتو ملي ادب کې د غزل تر سرلیک لاندې خپلې ملي غزلې لرو چې دلته زموږ موضوع نه ده خو بیا هم د توپیر لپاره یې د جوړښت او پیدا ښت په اړه یې دلته لنډه تبصره لرم:

له کومه چې پښتنانه پیدا دي شعر یې په خټه کې اخښل شوی دی، چې په مختلفو ولسي جولو کې یې وړاندې کړی. د ولسي غزل پیدا ښت هم په تیارو کې دی، دا چې سینه په سینه ولسي شاعري را لېږدېده نو ډېری بېلګې یې له منځه تللي دي، هغه چې زموږ په واک کې دي په ټولو کې د قمر دین (۱۰۸۱-۹۹۱هجري) غزلې دي چې د پلار نوم یې سید احمد دی او د ننګرهار د دره نور اوسېدونکی و، چې پخپل لاس لیکلی پښتو دیوان یې پاتې دی. د غزل بېلګه یې:

دا مې اقبال دی چې مین یمه زه ستا په جمال
بخت و طالع به مې وي که مې نصیب شي وصال
که حجاب پورته کړې له مخ تل به ښادي وي په ما
لکه غونچې د ګل غوړېږي د سهار په شمال
د شهید ګۍ په مرتبه کې نشته شک و شبه
شهید به هله شم دلبر که ستا په تېغ شم حلال
بغیر له حکمه یوه پاڼه د شجر نه رېږي

چې حکم وشي د رب زانګي به په شان د تال
زه قمر دين به شم باچا که مې غلام و ګڼې
جوغه داران ستا غلامان دي يم خبر په دې حال
(۸ م ۳۳۵)

اولسي غزل په همدې سيلابو تونيک سيستم سره اندازه کېږي او هغه يو ډول يې د جوړښت له مخې له عروضي غزل سره څه توپير نه لري، خو ځېني يې بيا د جوړښت له مخې توپير لري.

**د غزل محتوا :**

د محتوى له مخې د فارسي په حواله غزل هماغه د تغزل په ډول د يو عادي کس يا مادي شيزونو ستاينه وه خو کله چې د غزنويانو دور پای ته رسېږي د ممدوحانو دور هم پای مومي او بيا د ممدوح د نوم او تخلص پر ځای خپل نوم او تخلص پکې راوړي. همدارنګه د نورو د ستاينو پر ځای خپل احساسات او عواطف پکې ځای په ځای کوي. خو کله چې تر دې هم د محتوى له مخې غزل راتېره شي بياد غم جانان پر ځای غم دوران ته مخه کړې او رنګارنګ مضامين د غزل په هيئت کې را څرګند شول.

د غزل جوړښت

۱- د غزل عمومي جوړښت:

د غزل لومړی بيت مصرع وي چې په ادب کې ورته مطلع وايي، د غزل نور بيتونه نا مصرع وي، وروستی بيت چې معمولا شاعر پکې خپل نوم يا تخلص راوړي مطلع بولي.
د وزن له مخې لومړۍ مسرې چې کوم وزن واخيست د ټولو مسريو وزن به هماغې سره يو شان وي.
د بيتونو شمېر يې ډېری کره کتونکو له (۵–۱۴ ) ښودلی دی.
خوشحال خان خټک يې تر ديارلسو او ځينو تر پنځه ويشتو هم دا شمېره لوړه کړې ده، د غزل د بيتونو شمېر همېشه تاک وي.
کېدای شي ځينې شاعران د غزل لومړي څو بيته مصرع راوړي يا هم ټوله غزل مصراع بيتونه ولري.
د معنى له مخې هر بيت بېله مفکوره او معنى لري خو په ټولو بيتونو کې د تاثر وحدت موجود وي.

د غزل جوله

□________________ □________________
□________________ ________________
□________________ ________________
□________________ ________________

________________
□________________

۲- د وزن له مخې د غزل جوړښت:

- په عروضي بحرونو جوړ شوی غزل:

د دولت لواني هغه غزل چې په رمل مثمن مخبون محذوف بحر کې ليکل شوی دی:

فاعلاتن فعلاتن فعلاتن فعلن

فاعلاتن فعلاتن فعلاتن فعلن

خبن: په لغت کې د لنډون لپاره د لمنې راټولولو ته وايي او په اصطلاح کې د رکن په بيل کې د حفيف سبب د دويم توري حذفولو ته وايي.

فاعلاتن ——— فعلاتن

حذف: په لغت کې له منځه وړلو ته وايي او په اصطلاح کې د وروستي سپک سبب غورځولو ته وايي:

فاعلاتن ——— فعلا ——— فعلا ——— فعلن

مرده دی دل چــه شب و روز يې محبت نلري

کـــــه ارادت د عـــبادت کوي قوت نلري

دل د مــــومن داهسې نه وي مګر دل د شقي

چـــې هـــمه عمر سلامت وي ملامت نه لري

عام و نادان که لـه درو ېشه ګريزان وي څه شو

..... له مـــــلامـــــت ســـره صحبت نلري

ملک عجب زېب د نمايش که ارايش په عدل

ډک به شي زړه لـــه بطالت چې عدالت نلري

که عزيزي غواړې دولــت (د ) قناعت ګنج دی

خوار و سائل وي هـــغه کس چه قناعت نلري

(۷ م ۲۳)

| فاعلاتن | فعلاتن | فعلاتن | فعلن | |
|---|---|---|---|---|
| مردَ دی دل | چ شبو رو | یَ مُحَبْبَت | نلري | |
| که ارادت | د عبادت | کوِ قُوْوَتْ | نلري | |
| دل د مومن | داهسې نه | وِمګر دِل | دشقي | |
| چې همه عم | رې سلامت | وِ ملامت | نلري | |
| عا مُ نادا | کَ لَ درو ېـ | شَ ګريزا | وِ څَ شو ؟ | |
| ..... | ل ملايک | سرَ صحبت | نلري | |
| مَل عجب زېـ | بُ نمايش | کَ اَرايش | پَ عدل | |
| ډک بَ شي زړه | لَ بطالت | چِ عدالت | نلري | |
| که عزيزی | غارِ دولت | (دَ) قناعت | ګن دی | فع لن |
| خارُ سائِل | دی هغه کس | چِ قناعت | نلري | |

(۷ نهم جدول)

- په سيلابو تونيک سيستم جوړ شوي غزل:

| مسره | لومړۍ | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | | ١ | ٢ | ٣ | |
| خجنه او ناخجنه | □ | _ | □ | □ | | □ | □ | _ | □ | | □ | □ | _ | □ |
| څپې | اِ | لا | هي | د | | مُ | حَب | بت | سو | | وز | گ | داز | را |
| د رکن نوم | صدر | | | | | حشوه | | | | | عروض | | | |

| مسره | دويمه | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | | ١ | ٢ | ٣ | |
| خجنه او ناخجنه | □ | □ | _ | □ | | □ | □ | _ | □ | | □ | □ | _ | □ |
| څپې | په | دا | اور | کې | | د | سِ | هيِ | سَ | | من | در | ساز | را |
| د رکن نوم | ابتدا | | | | | حشوه | | | | | ضرب | | | |

تن پرور بلبل دې عيش کاندي په گلو
پــــروانـــــه لره په اور زما پرواز را
چـــــې نــظر له ناتوانۍ وچاته نه کا
د هـــــغو بيمارو سترگو نياز و ناز را
څو به گورم د قيامت و ورځو شپو ته
دا انــــجام پــــه دم قدم کې د آغاز را
د حمـــــيد محـــموده رايشه پخپله
کمـــــــينۍ لــــره کمال زما اياز را
(٤م ٢١١)

٣–د څپو د شمېر له مخې: چې هره مسره يې اوو څپې ولري.

دغه يار دی دا اغيار
دغه گل دی دغه خار

| مسره | لومړۍ | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | | ١ | ٢ | ٣ | ٤ |
| خجنه او ناخجنه | □ | _ | □ | □ | | □ | _ | □ | □ |
| څپې | د | غه | يار | دی | | دا | اغ | يار | |
| د رکن نوم | صدر | | | | | عروض | | | |

| مسره | دویمه | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د ښپو شمېر | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ |
| خجنه او ناخجنه | □ | _ | □ | □ | | □ | _ | □ | □ |
| ښپې | د | غه | ګل | دی | | د | غه | خار | |
| د رکن نوم | ابتدا | | | | | ضرب | | | |

دغه ګل دی دغه خار
دا مصور دی دغه دار
دا رقیب دی دا حبیب دی
دغه ګنج دی دغه مار
دغه عشق دی دغه عقل
دغه غم دی دا غمخوار
دا رحمان دی دا جانان دی
دا طبیب دی دا بیمار
(۸م ۱۵۰)

- چې هره مسره یې اته ښپې وي:

ښه بلا یې احتیاجه
چې سړی کړې سک مزاجه

| مسره | لومړی | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د ښپو شمېر | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ |
| خجنه او ناخجنه | □ | □ | _ | □ | | □ | □ | _ | □ |
| ښپې | ښه | بَ | لا | يې | | اح | تِ | یا | جه |
| د رکن نوم | صدر | | | | | عروض | | | |

| مسره | دویمه | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د ښپو شمېر | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ |
| خجنه او ناخجنه | □ | □ | _ | □ | | □ | □ | _ | □ |
| ښپې | چې | سَ | ړی | کړې | | سک | مِ | زا | جه |
| د رکن نوم | ابتدا | | | | | ضرب | | | |

مسلمان هندو روش کړې

او هـــــندو مسلم رواجه
د هـــــوا ازاد مـــرغونه
په دام بند کـــړې لا علاجه
وشاګرد وته اســـتاد کړې
سپـک په قـــدر د دجاجه
د حـميد معـراج حصلېږي
د غـــمونو لـــه امـــواجه
( ٤ م م١٩٨ او ١٩٩ )

- چې هره مسره يې لس څپې وي:

ما چې د مينې ابتدا اوکړه
تـا په ستم کې انتها اوکړه

| مسره | لومړۍ | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | | ١ | ٢ | ٣ | |
| خجنه او ناخجنه | _ | □ | □ | □ | | _ | □ | □ | □ | | _ | □ | □ | □ |
| څپې | ما | چې | د | میـ | | نې | ابـ | تِ | دا | | او | کړه | | |
| درکن نوم | صدر | | | | | حشوه | | | | | عروض | | | |

| مسره | دويمه | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | | ١ | ٢ | ٣ | |
| خجنه او ناخجنه | _ | □ | □ | □ | | _ | □ | □ | □ | | _ | □ | □ | □ |
| څپې | تا | په | سِ | تم | | کې | ان | تِ | ها | | او | کړه | | |
| درکن نوم | ابتدا | | | | | حشوه | | | | | ضرب | | | |

نن مې ساقي ته چـې انکار اوکړو
دا مــــې روا کــــه ناروا اوکړه
ما ورته وې چې څه اقرار و زمونږ
وې چـــې تـــه دا خبره بيا اوکړه
دا به په تا هـــم آزمېښت وي زما
څــه آزمېــښت خو ته په ما اوکړه
حمزه د وخت غوندې اتّال نشو لاړ
وايــــې ياران چې يې جفا اوکړه

(۱۱ م م ۷۸ او ۷۹)

- هغه چې هره مسره یې یو ولس څپې وي:

هـــر چـــې وویني په سترګو روی د ستا
مخ یې کوږوي همېشه په ســوی د ستا

| مسره | لومړۍ | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | | ۱ | ۲ | ۳ | |
| خجنه او ناخجنه | □ | □ | □ | _ | | □ | □ | □ | _ | | □ | □ | □ | _ |
| څپې | هر | چې | و | ویـ | | ني | په | ستر | ګو | | روی | د | ستا | |
| د رکن نوم | صدر | | | | | حشوه | | | | | عروض | | | |

| مسره | دویمه | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | | ۱ | ۲ | ۳ | |
| خجنه او ناخجنه | □ | □ | □ | _ | | □ | □ | □ | _ | | □ | □ | □ | _ |
| څپې | مخ | یې | کوږ | وي | | هـ | مېـ | شه | په | | سوی | د | ستا | |
| د رکن نوم | ابتدا | | | | | حشوه | | | | | ضرب | | | |

بې دمـــــاغـــــه به تر سر او ماله تېر شي
چـــې یـــې تېـر شي تر دماغه بوی د ستا
که لو یې کړي څه بې ځایه خو یې نه کړي
چې پــــه دارنګه قـــامت دی لوی د ستا
نوبــــهار شـــــه عـالم سیر د بوستان کا
خدای وماوته بـــــوســـتان کړ کوی د ستا
ګل لمـــبه شـــــه د بـلبـل په آه رحمانه
نه ګروهېږي یار په های و هـــوی د ســـتا
(٦ م م ٤۹ او ٥۰)

- هغه چې هره مسره یې دولس څپې وي:

نه دی ګل د ستا د مخ مخې خو شرنګه
ګله جلوه په یوه رنګ کړي ته سل رنګه

| مسره | لومړۍ |
|---|---|

| د څپوشمېر | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خجنه او ناخجنه | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ |
| څپې | نه | دی | ګل | د | ستا | د | مخ | مَـ | خې | خوش | رن | ګه |
| درکن نوم | صدر | | | | حشوه | | | | عروض | | | |

| مسره | دویمه | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | |
| خجنه او ناخجنه | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ |
| څپې | ګل | جل | وه | په | یـ | وه | رنګ | کړي | ته | سل | رن | ګه |
| درکن نوم | ابتدا | | | | حشوه | | | | ضرب | | | |

چې يې ستا د تـــنګې خولې تصور واخست
په دا فـــکر کـې غـونچه شوه په زړه تنګه
دا زمـــــا د آه لــوګی پـــکې ليده شي
آيـينه دې د مـــــخ نه ده پـــه خط زنګه
چې يې تا غوندې د لبر په څنګ کې کښېني
د هـــغو دمـــــاغ بـلند وي تـــر او رنګه
پـــس لـــه مرګه دې حميد هسې ژاړه شي
ای پــــه اور د نبـــکلي مخ شوی پتنګه
(٨م ٢١٢)

- هغه چې هره مسره یې دیارلس څپې وي:

تـــوره چـــې تېرېږي خو ګوزار لره کنه
زلفې چې ول ول شي خو خپل یار لره کنه

| مسره | لومړۍ | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ٤ |
| خجنه او ناخجنه | _ | ▯ | ▯ | ▯ | _ | ▯ | ▯ | ▯ | _ | ▯ | ▯ | ▯ | _ |
| څپې | تو | ره | چې | تې | رې | ږي | خو | ګو | زار | لَ | ره | کَ | نه |
| | صدر | | | | لومړۍ حشوه | | | | دویمه حشوه | | | | عروض |

| مسره | دویمه | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ٤ |
| خجنه او ناخجنه | _ | ▯ | ▯ | ▯ | _ | ▯ | ▯ | ▯ | _ | ▯ | ▯ | ▯ | _ |
| څپې | زل | فې | چې | ول | ول | شي | خو | خپل | یار | لَ | ره | کَ | نه |
| | ابتدا | | | | لومړۍ حشوه | | | | دویمه حشوه | | | | ضرب |

- هغه چې هره مسره یې څوارلس څپې وي:

طالب د لېونتوب شو پښېمان د تسلۍ
وسـعت د بـیابان لري زندان د تسلۍ

| مسره | لومړۍ | | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ |
| خجنه او ناخجنه | ▯ | _ | ▯ | ▯ | ▯ | _ | ▯ | ▯ | ▯ | _ | ▯ | ▯ | ▯ | _ | ▯ | ▯ |
| څپې | طا | لب | د | لېـ | ون | توب | شو | پ | ښېـ | مان | د | ت | سـ | لۍ | | |
| | صدر | | | | لومړۍ حشوه | | | | دویمه حشوه | | | | ضرب | | | |

| مسره | دویمه | | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ |
| خجنه او ناخجنه | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ |
| څپې | وس | عت | د | بیـ | یا | بان | لَ | ري | زن | دان | د | ت | سَ | لیـ | | |
| | ابتدا | | | | لومړی حشوه | | | | دویمه حشوه | | | | ضرب | | | |

وحشت کې بـــیابان شو گلستان د تسلی
ګنډلی مـــې اغـــزو دی گریبان د تسلی
ناصحه لــــه خـــپل ځانه وي جوهر د آیینې
بـــس نـــور حـــیرانوي ولې حیران د تسلی
تر څو چې یې ملـــگری وي دا ستا لېونی یار
کېدی نشي لــــه زړه سره گـــذاره د تسلی
حمزه ملگري څو درسره پـــاتـې شول په لار
ختمېږي په شا او گــــوره مـیـدان د تسلی
(١١ م م ٩١ او ٩٢)

- چې هره مسره یې پنځلس څپې وي:

مخ ته کـه دې نمر وایم د نمر زلفې تار تار نشته
ســروکـه دې قد بولم د سروې بون رفتار نشته

| مسره | لومړۍ | | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ |
| خجنه او ناخجنه | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ |
| څپې | مخ | ته | که | دی | نمر | وا | یم | د | نمر | زل | فې | تار | تار | ن | شته | |
| | صدر | | | | لومړی حشوه | | | | دویمه حشوه | | | | عروض | | | |

| مسره | دویمه | | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ | ١ | ٢ | ٣ | ٤ |
| خجنه او ناخجنه | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ |
| څپې | سر | وَ | که | دی | قد | بو | لم | د | سر | وې | یون | رفـ | تار | ن | شته | |
| | ابتدا | | | | لومړی حشوه | | | | دویمه حشوه | | | | ضرب | | | |

هر څوک چې د ستا و آتشين رخسار ګل وايي
پوچ وايي د اور په مخکې وقر د ګلزار نشته
زلفې دې نا حقه خلق بولي په سنبل صنم
ولې چې له مښکو سره هېڅ د ګياه کار نشته
ما چې غږ په غوږو ستا د درد سپيو اورېدو
هسې رنګ بلبله په چمن کې په ګفتار نشته
ستا ديدن هغه ک چې يې سر په تنه پاس نه وي
ولې چې دس ر د ښښتن حورو وته لار نشته
يار به د رقيب په لوري خداى نه کا رحمانه سم
ولې چې د سپيو فرښتو سره څه کار نشته
(۸ م ۱٥٤)

- چې هره مسره يې شپاړس څپې وي:

راته مينه پېغور راکړي پښتون زړه زما غمګين شي
چې داني داني له مانه ستا د غاړې لونګين شي
(۱۰ م ۱۱۲)

| مسره | لومړۍ | | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ |
| خجنه او ناخجنه | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ |
| څپې | را | ته | مېـ | نه | پېـ | غور | را | کړي | پښـ | تون | زړه | ز | ما | غم | ګين | کړي |
| | صدر | | | | لومړۍ حشوه | | | | دويمه حشوه | | | | عروض | | | |

| مسره | دويمه | | | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د څپو شمېر | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ |
| خجنه او ناخجنه | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ | □ | □ | _ | □ |
| څپې | چې | دا | ني | دا | ني | له | ما | نه | ستا | د | غا | ړې | ل | ون | ګين | شي |
| | ابتدا | | | | لومړۍ حشوه | | | | دويمه حشوه | | | | ضرب | | | |

٤ - د ردیف د راوړو او نه راوړو له مخې:
هغه کلمې یا ترکیب چې په عین معنی او بڼه د قافیو تر کلمو وروسته تکرار راځي ردیف ورته وايي.

- هغه غزل چې ردیف لري:

په لاندې غزل کې (خوبن) ردیف دی:

هسې یم په درد و غــــم کې د دلبر خوبن
لکه اوسي په ســــره اور کې سمندر خوبن
لکه گل و خــــفه ځای ته شي بوی زیات کا
تــــر پــــخلا مې هغه یار دی مرور خوبن
لکه خــاورې په سر خوبن یم زه په عشق کې
باد شاهـــــان به هسې نه وي په افسر خوبن
چې د عــــشق د اب و اداب ښیم رقیب ته
د اســــــلام د ودونه نه وي د کـافر خوبن
خـــــامخا بـه صبر خوبن مفلس حـمید کا
چې خوبانو ددې وخت کړل سیم وزر خـوبن
(۸ م ۱۹۹۹)

- هغه غزل چې ردیف نلري:

خـــو خـــبر نـــه دی وگړي له دې رازه
گـــــني بـېل حــــقیقت نه دی له مجازه
عــــارفـــان چـې له خودیه ځان خالي کا
تسبـــــیح اروي د شـــپـېلـیـه لـه آوازه
که په عشق کې نسب شرط د مـــحبت وي
د مـــــحـــــمود مینه به نه وه له آیازه
امیتاز يې تـــر مـــــنځ حـسن راپیدا کا
گـــني فـــرق د بـــد خویۍ نشي له نازه
چې خپل یار عبد القادر ته په نیت ښه وي
نــــور یـــې کومه اند ېښنه ده له غـمازه
(۸ م ۸۹)

٥ - د مطلعې له مخې د غزل وېش:

د غزل د پېل هغه بيت چې په دواړو مسرو کې يې د قافيې کلمې راغلي وي مطلع بلل کېږي.

- د يوې مطلعې غزل:

مـــــخ دې کـــــړل ګلونه شرمنده زلفو سنبل
درومـــــې ســـــتا په لوري له باغ الوځي بلبل
زړه مــــې لـــه غيرته په ګوګل د ننه دود شي
ږمـنځ چې دې بې فـهمه وهي ګوتې په کاکل
سرې شونډې دې زېـب هسې پيدا په تبسم کا
عين لکه غونچه چـــې پـانـې وسپړي د ګل
وکاږم کــــه زه هــــزار تــوبې له صبره زهده
ته يې په يوه نـــــظر بــــربـــاد کړې له ماکل
يو مخې حميده د ســـربند د ښــــکليو نه دی
مصر که کنعان دی کــــه کشمير دی که کابل
( ٤ م م ١٣٤ او ١٣٥ )

- د دوو مطلعو غزل:

خوب د مينې کړي ، بېدار شو زما عمر
بـــس خـــــو واړه انتظار شو زما عمر
کــــه د مــــينې د پښو خار شو زما عمر
د ښــــــايست د غارې هار شو زما عمر
په مـــــعنی کې مين شوی په ماشوم يم
خـــــدايه څـنګه بې قرار شو زما عمر
عاشقي مـــې د فطرت تارونه سر کړل
سنـــــــدريـز او نغمه بار شو زما عمر
اوس لـه ځانه په وعده د يار بېزار شي
حمزه ښکاري چې هوښيار شو زما عمر
(١١ م م ٤١ او ٤٢ )

- د درې مطلعو غزل:

بــــې شـــــکه ما د غه خطا کړې ده
چـــــې تـــا جـفا کړه ما وفا کړې ده
نـــن مـــې پــــه عمر ستا رضا کړې ده
چـــې مې خپل مرګ لره دعا کړې ده
تــــــا کــــــه د ظلـم انتها کړې ده
مــــا پـــــه تــسليم کې ابتدا کړې ده
دا چــــې سـم سـم راته نظر نه کړي

ښکاري چې تا مې د زړه غلا کړې ده
چې خـــپل غـــزل د چانه واورم حمزه
وایم چې چـــا هـسې وینا کړې ده ؟
(۱۱. م ٦٥ )

• بې مطلعې غزل:

تـــــر مـقـصـوده بـــه هـله سرې رسېږي
په هر څه کې چې مـــرضي د خپل دلبر کا
عـــــشق و عـــــقل پـه هنر کله نیوه شي
عـــــاشقان همېش د زړه سودا بې سر کا
چې باور يې پـه توحید باندې محکم شي
تـــرې بـــه دفع ما سوا د شک لښکر کا
خپل آشــــنا بــه د آشنا په سترګو ګوري
بـــې آشــــنا بـــه پـه نور چا کله نظر کا
د مـــهـيـــن ویـــل به لا تر دې خوارېږه شي
که میا چـــې پیاله د خاص محبت ورکا
(۸ م م ۱۳۵ او ۱۳٦ )

٦-د مقطعې له مخې د غزل وېش:
د غزل وروستی بیت چې شاعر خپل نوم یا تخلص په کې راوړي مقطع بلل کېږي
• دیوې مقطعې غزل:
هغه غزلې چې د مطلعو له مخې د ببلګې په ډول راوړل شوي د یوې مقطعې غزلې دي.
• د دوو مقطعو غزل:

تورو زلفو مـــې خـــاطر کړ تار په تار
نه یـــې مـومم که يې غواړم نار په نار
لکه ســـيل چـــې رژوي کـمر د شګو
نـــړوي مـــې هـسې مینه وار پـه وار
مړاوې رنګ زما پوښته له مړاوو سترګو
دا چـــې وي خـبرداری د خوار په خوار
تل حـمـيـد پــه دا ویـنا ستایه مطربه !
چـــې دی و ، د عــاشـقی په چار نا چار

لـــــو یـــا وه یـــې پـــټکو لره د ښکلیو
چـــې ساته عبدالحمید شه په ځار په ځار
( ٤ م ٦٩)

- بې مقطعې غزل:

شــــهرت د عقل لـــه نـــامـــه د افلاطونه نه ځي
د ازادۍ مينه هېڅکله لــــه پــښــتونــه نــه ځي
کـــه هـــــر څـــه لاړسي له دې د هر او جهانه ځنې
د بــــل لـــه جغ لاندې ژوندي ويښ ملتونه نه ځي
د ازادۍ مـــعـــراج تــــه نـــه رســېږي هغه کسان
چــــې د غـيرت او ننګ په لار کې يې سرونه نه ځي
په تـــــوره باندې چې مړ نه شي څوک يې نه پېژني
دا ســــــې مـــــزار ته پښتنې ملالې نجونه نه ځي
سرومال ځي د عشق په لار کې خاورې کېږي زړونه
د لـــيـلـی مـينه پـــس لـه مرګه له مجنونه نه ځي
(۱ م ۸٤)

۷ - د بيتونو د شمېر له مخې

د بيتونو د شمېر له مخې غزلې له پنځو بيتونو څخه تر پنځه ويشتو بيتونو پورې په ادبياتو کې راغلي دي.

۸ –د قاقيې له مخې د غزل وېش:

غبرګه (ذوالقافيتين ) غزل

**جوله**

| | |
|---|---|
| □__________________ | □__________________ |
| □__________________ | □__________________ |
| □__________________ | □__________________ |
| □__________________ | □__________________ |

□__________________
□__________________

- ساده يا د يوې قافيې لرونکي غزل:

| | |
|---|---|
| □__________________ | □__________________ |
| __________________ | □__________________ |
| __________________ | □__________________ |
| __________________ | □__________________ |

__________________
□__________________

ماخذونه:


۱–الفت ، گل پاچا . ( ۱۳۷۵ ل ) ، د الفت مرغلرې ، پېښور: دانش کتابخانه.

۲ - همکار، محمد ابراهیم.( ۱۳۸٦ ل ) ، قافیې فن، درېیم چاپ ، جلال اباد: رڼا مرکز کولتوري ځانګه.

۳ - هوتک ، محمد . (۱۳۳۹ ل ) ، پټه خزانه ، دریم چاپ ، کابل: د پوهنې وزارت.

٤–مومند ، عبدالحمید . (۱۳۸۳ل ) ، د عبدالحمید مومند کلیات ، پېښور: دانش خپرندویه ټولنه

٥–محمد مین. (۱۳۸۳ ل ) ، فرهنگ فارسي (یکجلدي ) ، چاپ ششم ، تهران: نشر سرایش.

٦–عبدالرحمن ، (۱۳۸٤ ل ) ، د رحمان بابا کلیات ، پېښور : دانش خپرندویه ټولنه.

۷ - رشاد ، عبدالشکور . (۱۳٤۳ ل ) ، په پښتو کې درې نیم سوه کاله پخوا عروضي نظمونه، وړمه ، اتم کال درېیمه او څلورمه ګڼه ، کابل: د ادبیاتو پوهنځی.

۸–رضا ، افضل. (۱۹۷۸ع ) ، د پښتو غزل ، پېښور: پښتو اکیډیمي.

۹–شمیسا ، سیروس. (۱۳۸۲ ل ) ، سبک شناسي شعر ، چاپ نهم ، تهران: انتشارات فردوس.

۱۰–شینواری ، حبیب الله زړه سواند. (۱۳۸٦ ل ) ، ګل شو پاڼې پاڼې ، پېښور: د افغانستان د خدمتونو اداره.

۱۱–شینواری، حمزه. (۱۹٥٦ ع ) ، غزونې ، پېښور: اداره اشاعت سرحد پشاور.

